# طالبان

او

# پښتو ادب

لیکوال

زکریا ملاتړ




۱۳۶۵ ش

# ټړون

د هغه شهیدانو په نوم چې د ۱۳۵۲ش کال څخه وروسته د وحشي روسانو د سیسو بنکار او تری تم شوي دي .

« ن - ملاتړ »




# یادونه

طالبان او د پښتو ادب جونګ او مجموعه تقریباً ما لس کاله وړاندې لیکلې او ټوله کړې ده خو د ځینو کړاوونو او مشکلاتو په اساس یې د چاپ کار ځنډیدلی و.

زما په اند او فکر کې د غه مجموعه لا بشپړه نه ده، ځکه داسې طالبان به وي چې زمونږ څخه پاتې شوي وي یا یې پیژندنه شوې وي د شعر بېلګه یې نه وي راغلې. او یا یې د شعر بېلګه راغلې وي پوره پیژندنه یې نه وي شوې. نو د پښتو ژبې د ټولو ادیبانو او څیړونکو او په خاصه توګه د طالبانو څخه هیله کوم چې ما د خپلو نیمګړتیاوو او نورو کمیو زیاتي په برخه کې معذور وګڼي.

«مؤلف»

# فهـرست





بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سریزه

د طالبانو او پښتو ادب د مجموعې د راټولولو او لیکلو فکر په لومړي ځل ما سره هغه وخت پیدا شو چې زه د اد بیاتو او بشري علومو د پوهنځي د پښتو څانګې د څلورم ټولګي محصل وم .

د پوهنځي څخه د وتلو وروسته هر محصل د خپل تحصیل په پای کې یوه علمي رساله لیکله .

په پښتو څانګې کې زیاتره داسې دود و چې هر محصل به د تحصیلاتو په پای کې د خپلې خپلې سیمې د یو شاعر یا څو شاعرانو پېژندنه او د اشعارو مجموعه راټولوله . په دې اساس

ما هم د خپلې سیمې د یو شاعر چې
قسیم الله طالب نومید او پنځوس کاله
وړاندې وفات شوی وخو نه یې د اشعارو کومه
لیکلې مجموعه درلوده او نه یې په تذکرو
مجلو او ورځپاڼو کې یادونه راغلې وه، ولې
څه ناڅه اشعار یې د هغه ځای د محلي سندرغاړو
په یاد کې پاتې وو. د نوموړي طالب پوره
پېژندنه او څېړنه په دې مجموعه کې د هغه
د اشعارو د بېلګو سره راغلې ده.

که په دې کتاب کې د یوې خوا د طالب په
نوم د پښتو شاعرانو پېژندنه او د شعرونو
بېلګې ترتیب او ټولې شوې دي نو د بلې خوا
په پښتو ژبه کې دا لومړنۍ تحقیقي مجموعه
ده چې د یو نوم یا تخلص لاندې د کسانو
شاعرانو پېژندنه او څېړنه په جلا او ځانګړې
توګه پکې شوې ده او په هدې ترتیب په پښتو
ادب کې د یو نوم لاندې د نورو شاعرانو
د مجموعو راټولولو له پاره لاره جوړه شوه.

## د طالب د کلمې څېړنه

د طالب کلمه په پښتو ژبه کې دود او عامه

ده خو اصلاً عربي کلیمه ده چې د غوښتونکي او پلټونکي معنا لري خو دلته د طالب کلیمه د عمل په معنا ده . څرنګه چې د پوهنتون محصلینو ته محصل ویل کیږي ، همدغه شان د جوماتونو او مدرسو شاګردانو ته طالبان ویل کیږي ، د طالب العلم کلیمه اوس هم په پښتو ژبه کې رواج لري .

پخوا چې د ښوونې او روزنې پروګرامونه په اوسنۍ بڼه نه وو ، زده کړه او تعلیم یوازې په دیني مدرسو او جوماتونو کې سرته رسیده او د لیک - لوست د زده کولو یواځینی لار هم دا وه . طالبان به د علم پسې لیرې - لیرې ملکونو ته تلل او د بېرته راستنیدو وخت کې به یې د ډیرې علمي ذخیرې او معلومات ، مختلف ډول کتابونه او دیوانونه د ځان سره راوړل .

د پښتو ژبې د کلاسیکې دورې اشعار د ملا او طالب ، پیر او مرید په ذریعه خپاره شوي او ساتل شوي دي . تر کومه ځایه چې مونږ ته معلومه ده د پښتو ژبې د اشعارو لومړی مرتب دیوان هم د ملا ارزاني دی ، ملا ارزاني د پیر روښان تینګ ملګری او ملاتړ و .

طالبان په کال کې يوه د سير او سياحت دوره لري چې په ميلو او اتڼو سره يې تېروي او د هوبت په نوم د ځانونو له پاره خير خيرات او چندې ټولوي. پښتانه طالبانو ته د قدر په سترګه ګوري، موږ د خپلې خبرې د ثبوت او پخلي له پاره د پښتو په ولسي ادب او لنډيو کې د طالبانو د ستاينې او وياړنې په هکله يو څو لنډۍ د نمونې په توګه دلته راليکو :

## لنډۍ

طالبان راغله ډولې ډولې
زما د زړه طالب را نغی وبه مرمه

طالبان مه کړې مين خدايهُ!
يو غم د عشق وي بل د علم کړې غمونه

طالبان واړه ملايان کړې
عبث يې مه کړې د ټول عمر زحمتونه

طالبان واړه ملايان شوله
هسې زما په کتاب پرېوتله ګردونه

طالبان وختل وطن ته

زه د جانان سترګو ړنځور کړې پاتې شومه
طالب په قبر کې ناري کړي
قلم مې کوږ ګوتې مې تورې خاورې خوړینه
طالبه ! بس که ژړا مه کړه
څوک خو دي نه شته چې دي او ښکې پاکې کړینه
طالبه ! خدای به وکه ملا شي
په کتاب پروت یې یا دوي شینکي خالونه
طالبه ! پوند شي کتاب کت کړه
ستا د کتاب تر حاشیو ډېر زما خالونه
طالبه ! زېرې مې در باندې
د جوماتخواته سیلانی راغلي دینه

---

طالبان په لنډیو کې څکه زیات ستایل شوي چې د علم پسې به ډېر کلونه ورک او جلا وطن وو ، پښتنو انجونو به د دوی دغه اوږد سفر د لنډیو په بڼه کې انځورولو. او کله - کله به د دوی په منځ کې رښتیانی مینې داسې شکل وموند لکه د طالب جان او ګلبشرې فلکلوریک داستان .

طالبان د لنډیو څخه علاوه په سروکو

او بکتیو کې هم ستایل شوي دي .
لکه :

توره طالبه! ناجوړه یمه
جوړه مې نه کړې یار په کل ایشتلې یمه
ناجوړه یمه .

د پورتنۍ څیړنې له مخې د طالبانو باطني احساسات د یو لړ خاصو شرایطو لاندې د شعر په رنګینو څپو اوښتي او بدل شوي دي . طالبان هېڅکله چاته خپل نوم نه ښيي او نه په خپلو منځو کې یو-بل ته نوم اخلي، بلکې د ملا او طالب په نوم سره شهرت مومي . کله چې د دوی څخه کوم یو شاعر شي نو د طالب تخلص غوره کوي .

مونږ په دې کتاب کې د دغه شان طالبانو د ژوند په حالاتو او د اشعارو په بېلګو باندې خپله څېړنه د توان په اندازه کړې او وړاندې کړې ده .

« زکریا ملاتړ »

۱۳۶۵-۴-۲۰

# ۱- احمدین طالب

احمدین د روانې پېړۍ د لومړۍ برخې یو بښه عالم او پوه شاعر دی ، په شعر کې یې طالب تخلص کولو . د ده د رباعیاتو دیوان د مردان د یو مشهور سندرغاړي بښاغلي صحبت خان د مرغوز او سیدونکي په اهتمام چاپ شوی دی .

ده د دیوان په سریزه کې خپل استاد احمدین داسې معرفي کړی دی :

" احمدین ملا صاحب عالم شاعر ، په ختمه فریدخیل د اشغر د اتمانزو و ، مګر دی به اکثره وخت په سوات کې و . مجرد و ، بال بچ یې نه و ، وریسې سوات ته لاړم ، شاګرد یې شوم ، بیا مې د ځان سره راوست ، تقریباً شل کاله په مردان کې له ما سره و . بیا پس له هغې زما په کور کې وفات شو .

مزار یې اوس په مردان کې دی. د استاد احمدین د خپل لاس تحریر شوي کتابونه ما سره موجود دي، اوس مې د هغه د شعر له دفترنه د رباعیاتو یو جلد کتاب چاپ کړ او د چاربیتو، غزلیاتو، نیمکیو دوهم جلد کتاب به یې هم چاپ کړم.»

احمدین په خپلو اشعارو کې د صحبت د شل کلن خدمت یادونه هم کړې ده :

یا زما د خولې دعا ده ورته ډېره
یا ورکړې رب په خپله شرافت دی
یا ترې زه «احمدین» ځکه ډېر رضایم
چې شل کاله مې «صحبت کړې خدمت دی

د احمدین په اشعارو کې یو خاص خوند او سوز پروت دی او په شعرونو کې یې د عشق او مینې هنګامه ډېره توده ده.

په صداقت، رښتیاویلو، عشق او تصوف کې د رحمان بابا پیرو دی او په نازک خیالۍ کې د حمید بابا د لارې منکری دی، مګر په عام ډول سره د رحمان بابا د سبک پیرو معلومیږي. د ده په اشعارو کې که څه هم رواني او ساده ګي زیاته ده خو کله د ملایۍ او طالبۍ په جوش کې ډېر مشکل عربي لغات استعمالوي او خپل شعر د عامو خلکو د پوهې له چوکاټ نه باسي ـ لکه :

نصيبه د نصيب ستا په نهيه نه شي
په سلمه د سلم كينه په بال شي

---

## د احمدين اشعار او افكار :

د احمدين طالب په اشعارو کې اخلاقي او اجتماعي رنګ
زيات ليدل کيږي، خصوصاً د بې وفائ او تنګ غندنه کوي .

هغه يار چې بې فايدې شي مه يې وينه
که سپين مخ يې پالودې شي مه يې وينه

چې په زړه يې محبت درسره نه وي
که خپل سود له درنيږدې شي مه يې وينه

احمدين د ژوندانه د سياست او چال چلند په هکله د
اعتدال او برابرۍ لار خوښه کړې ده .

داسې خوږ لکه د شهدو شکر مه شه
تريخ په مثل د حنظل د ثمر مه شه

ميانه د تريخ او خوږ په منځ کې اوسه
يه بد خوی په بد کارۍ مشهور مه شه

احمدین د خولې په تشه راشه درشه هم نه خوشالیږي او په اجتماعي افکارو کې يې د پښتو او پښتونولۍ رنګ زيات ښکارېږي .

راضي نه یم تش د خولې په راشه ـ درشه
څو چې موږ په وصال لاړ نه شم له فرشه

په اشعارو کې بدیعي صنایع او د پښتو متلونو تضمین هم لیدل کیږي .

چې اوښان لرې ساته دروازه دنګه
په وړه دروازه اوښ به تېر شي څنګه

د احمدین په اشعارو کې د مینې او محبت ، عشق او سوز خوند ور خیالونه هم ډېر دي ، وګورئ چې د یار د مخ شمع ته د زړه په تاج کې ځای ورکوي .

که د مخ شمع دې راوړم د زړه تاج له
خودا نه وایې چې راشه بوسه واخله
لوېمار بېلتون د وصال په قهرمان داسې ډاروي .

بېلتانه مې خزانه د صبر لوټ کړه
قهرمان د وصال نه راځې کوابښ له

په اخر کې دوه غزلې د احمدين طالب د اشعارو څخه د نمونې په ډول رانقلوم .

## غزل

سپين رخسار که دې نن وي سبا به نه وي
نوبهار که دې نن وي سبا به نه وي

د بلبلو بېدلانو ازار مه اخله
د ا ګلزار که دې نن وي سبا به نه وي

پريذات دې په جلوه د سترګو سوځي
جوش خمار که دې نن وي سبا به نه وي

د لالونو د مرجانو سوداګره !
خريدار که دې نن وي سبا به نه وي

ټول خوبان دې د جمال په رڼا زيستکا
سير سينګار که دې نن وي سبا به نه وي

احمدينه ! هغه يو اشنا دې بس دی
دوهم يار که دې نن وي سبا به نه وي

## غزل

ما وې وګوره چې زړه مې قلم نه دی
دې وې صبر کړه لايق د ملهم نه دی

سوی ستا په عشق کې ژاړم اوښکې وینې!
دې وې بې ژړا چا موندی ګلفم نه دی

ما وې کله به په ما مهر و کرم کړې
دې وې قطع دې لا خیال د کرم نه دی

ما وې اور مې ستا د عشق په زړه بلیږي
دې وې رنګ دې د بورا سره سم نه دی

ما وې بیا مې ستا د لوري قسم وخوړ
دې وې هیڅ باور مې ستا په قسم نه دی

ما وې نوم مې احمدین طالب سیاح دی
دې وې کړې دې لا سیال د ارم نه دی

---

د احمدین طالب د پیژندګلوۍ اخځونه په لاندې ډول دي :

۱- پښتني سندرې دوهم برخه، ساپی محمد حسن، احمدین طالب ۱۳۳۵ش کال پښتو ټولنه ۱۷۸ مخ .

۲- پښتانه شعراء دوهم ټوک پوهاند رښتین احمدین طالب ۱۳۲۱ش پوهنې مطبعه ۶۷۸-۶۸۰ مخونه .

۳- عرفان مجله ۱۳۵۴ش کال (اسد / عقرب) پوهاند رښتین ۲۴-۲۹ مخونه .

۴- پښتو اریانا دایرة المعارف دوهم جلد ۵۶۲ مخ .

۵- " " " " دریم جلد ۵۸۸ مخ .

# ۲- محمّد حسين طالب

د ښاغلي محمد حسين د پلار نوم غلام حسين دی، د پښتو او دري ژبې پوخ شاعر او ليکوال دی، په ۱۲۸۵ ش کال د کندهار د ډنډ د گوندگان په کلي کې زېږېدلی دی، لومړنۍ زده کړې يې د کندهار په لومړنۍ ښوونځي کې سرته رسولې او نور تحصيل يې د کابل د حکامو په ښوونځي کې کړی دی، د وخت مروجه علوم يې په خصوصي ډول لوستي، د ډېر وخت را په دې خوا په پښتو او دري ژبه شعرونه وايي او په دواړو ژبو کې د اشعارو مجموعې لري. پر دې برسېره په پښتو او دري ژبو کې يو زبردست نثار دی، د واصل کندهاري ديوان هم دده په زيار چاپ شوی.(۱)

(۱) اوسني ليکوال دريم ټوک، محمد حسين طالب ۱۳۴۶ ش ۱۳۸۶ـ ۱۳۹۰ مخونه.

وروستي ماموريت يې په داخله وزارت کې د پښتو امريت و، په ۱۳۳۸ ش کال تقاعد ورکړه شو .

په ۱۳۴۳ ش و کندهار د ښار د حوزې نه د اولسي جرګې د وکالت لپاره کانديد شو او بيا وروسته يې په خپله خوښه يوه دارالوکاله جوړه کړه .

د اشعارو مجموعه يې په دوو وروستيو پېړيو کې د پښتو د چاپ شويو اثارو د سيمينار په وياړ د بيهقي کتاب خپرولو مؤسسې له خوا د ښاغلي عبدالجليل په اهتمام په ۴۹ مخونو کې چاپ شوې ده .

مګر په دغه کوچنۍ رساله کې د شاعر د پېژندګلوۍ په هکله يوه کرښه هم نه ده توږه شوې .

اوس به د ګرانو لوستونکو له پاره د ده د اشعارو د مجموعې څخه يو شعر چې د رحمان بابا د شعر په پيروۍ يې ويلی دی د نمونې په ډول دلته رانقل کړم .

### ښه عمل د لارې مثل(۲)

نه محتاج د تاج و ګنج نه د سرير يم

مستغني هم د پاچا هم د امـــير يم

چې اېرې کېميا کوي هغه اکسـير يم

---

(۲) د طالب محمد حسين د اشعارو مجموعه ۱۴ــ۱۵ مخونه .

که مې څوک په امیرۍ شمېري امیر یم
که مې څوک په فقیرۍ شمېري فقیر یم

---

چې لمبې یې پورته کېږي له ورږو
په بل اور دي څه حاجت د سمندرو
زه خو نه غواړم ژوندون د پېغلو
صدقې لره یې غواړم د دلبرو
هسې نه چې په دنیا پسې زهیر یم

---

که نظر کړې کائنات او دې دنیا ته
سلسله د تعاون دربنیي وتاته
تعاون دا دی چې وګوره وماته
هم پند اخلم هم پند وایم وهرچا ته
زه د څښو یم مرید د څښو پیر یم

---

عاشقانو ته خپل عشق پیر کامل دی
عشق چې نه وي د تش علم څه حاصل دی
تاثیر نه لري تسبیح که زړه غافل دی
د خرقې خدمت هرګوره ډېر مشکل دی
که نه زه ودغه کار وته په څېر یم

---

د پتنګ د سرې لمبې نه څه پروا ده
زه عاشق یم د عشق درد ماته دوا ده
لکه ګل په پرېشانۍ کې مې خندا ده
لکه شمع په خندا کې مې ژړا ده
له عالمه پټ پنهان د زړه په ویر یم

---

د انسان زړه آیینه عشق یې صیقل دی
بنه عمل د لارې مل ضرب المثل دی
عشق مې خوی، عشق مې مسلک، عشق مې عمل دی
په هجران کې خیال د یار راسره مل دی
په زندان کې د یوسف(ع) سره اسیر یم

---

مجنون غوږ څوې که ځان د عشق واورته
نه ګورې د عاقلانو و پیغور ته
نه چې ګورم د دنیا و شور ماشور ته
نه شته بله ان ادې تر دغه پور ته
چې بندي د یار د زلفو په ځنځیر یم

---

رښتیا دا ده که زاړه دي که زلمیان دي
هزاره طالب پښتو ته تول حیران دي
عاشقان په خاکسارۍ کې پاچهان دي

خوشحال خان او دولت خان مې غلامان دي
نه رحمان په پښتو ژبه عالمګير يم

يو نه نه يم د غنه واړه طالبان دي

---

# ۳- طالب جان

نوموړی شاعر موږ د يوې چاربيتې په واسطه پېژنو، يعنې د چاربيتې د کسر د بند څخه موږ د ده ځای معلومولای شو. د چاربيتې په اخر کې د «سنگينه» نوم راغلی دی، سنگينه د ننگرهار د چپرهار د رود په بر سر کې د يوه وړوکي کلي نوم دی. طالب جان يو ملي شاعر او په چاربيتو کې د قوي لاس خاوند دی، نوموړی د ۱۴۰۰ هـ ق په شاوخوا کې تېر شوی. په لاندنۍ چاربيته کې د ټيک او د پېزوان سوال ځواب په ښه ښو الفاظو کې کوي.

## چاربيته

جگړه شوه په غږ باندې　　د ټيک او د پېزوان

ټيک وويل پېزوان ته ستا ښايست له ما نه کم دی

منکر له قسم دی

ټيك وويل پېزوان ته    ته ګوره زما شان ته
جلۍ چې شي بالغه اول د ولړ په ما کاندي
جګړه شوه په مخ باندې
جلۍ چې ځان سمبال کا    وربل په وروځو جال کا
د پاسه يې ما سور کاندي په مثل د سلطان
د ټيک او د پېزوان
اوربل يې لري تخت    ويښ شوې چې دې بخت
پېزوانه يې فايده يې لا في وهې دا دې لوی غم دی
منکر لره قسم دی

---

پېزوان ويل ټيکه نر يم    د پوزه په بنه د فتر يم
ته پروت يې په ځنګله کې نه شرمېږې چې لاخاندې
جګړه شوه په مخ باندې
ځنګل شو ستا په برخه    دا ستاد کمي ځنبه
بندي به يې تر خو سيل دې ونه کړو د ميدان
د ټيک او د پېزوان
بل مې شولې د ولږې    چېچې دې سپږې ورګې
نه پروت يم په حرم کې بنه خوراک مقام مې فم دی
منکر لره قسم دی

---

ټيک وېل مه وايه سپکي　　يو تن يې څه به وکي
چارګل مې کښولې په بنډارکې درته وړاندې
جګړه شوه په مخ باندې
چاپېر ترې خنجرکي دي　　چړې او ټوپکي دي
که نر يې راښکاره شه چې حيران دې کړم په ځان
د ټيک او د پهلوان
ننګې ښه په چړچه کې　　پرته ده په مورچه کې
د باب شباب کوي د جنګ ته بير ورسره سم دی
منکر له قسم دی

---

جنګ جوړ شو صف په صف　　لښکر په هر طرف
ټيک شو په جنګ کې لر څکه حملې يې کړې د وړاندې
جګړه شوه په مخ باندې
صفت د هر کالي دی　　اشنا زما خيالي دی
چور چور په زړه رنځور مينې د يار کړو طالب جان
د ټيک او د پهلوان
مسکن مې سنګينه شوه　　غلبېل زما سينه شوه
د يار مې انديښنه شوه، زړه زما پسې قلم دی
منکر له قسم دی

---

د طالب جان د پیژند ګلوۍ اخځونه په لاندې ډول دي :

---

۱ـ پښتانه شعراء دوهم ټوک، پوهاند رښتین، طالب جان ۱۳۴۱ ش پوهنې مطبعه ( ۶۱۲ ــ ۶۱۵ ) مخونه .

۲ـ پښتنې سندرې دوهمه برخه ـ پښتوټولنه ۱۳۳۵ ش کال ( ۳۷ ـ ۳۹ ) مخونه .

۳ـ پښتو اریانا دایرة المعارف ـ دریم جلد ۵۷۵ مخ .

# ٤- قسیم الله طالب

قسیم الله طالب د وسیم الله زوی د پښتو ژبې او ادب د پخوانیو اولسي شاعرانو څخه ګڼل کېږي، د ننګرهار د کوټ د هندرانو د کلي اوسیدونکی دی چې د وخت د مشهورو عالمانو څخه ګڼل کیده، په دیني علومو کې د لوی لاس خاوند او مدرس وو، په شعر کې یې طالب تخلص کولی، تر اوسه یې د اشعارو لیکلې مجموعه په لاس نه ده راغلې مګر ځینې نیمګړې شعرونه یې ما په سینه کې د مختلفو اولسي سندرغاړو څخه راټول کړي دي.

نوموړی په دېرش سپین ږیرتوب کې د اتش په مرض مړشوی دی. د وفات په برخه کې یې مختلف روایات دي خو تر ۱۳۰۸ش کال پورې د ده ژوند په یقیني توګه رسولای شو. ځکه د نادرشاه د پاچا کیدو په هکله یو شعر لري چې په لاندې توګه دی:

غازي محمد نادره! پاچاهي دې مبارک شه
په دين د پيغمبر يې
بيرغ د ې د اسلام په تول اوطانو باندې لکه شه
بېشکه دلاور يې

قسيم الله په شعر کې زيات د عربي ژبې تر تاثير لاندې راغلی دی . ده په خپل شعر کې مغلق ديني مسايل په خورا ساده او روان شکل بيان کړي دي خو په منظم ډول راته نه ښکاريږي .
وګورئ په لاندنۍ چاربيته کې د زمکې په باب يو فلکلوري که نظر د شعر په ژبه مجسم کړی دی .

## د چاربيتې د کسر بند

خدای کړله پيدا په خپل قدرت يو مرغلره
اته پردې نه رب په ښرنګه کړه ظاهره
ښکند ورنه لوګی شو تر پسه جوړ شول اسمانونه
نوره راغله په هغه ځای باندې اير شوله
زمکه په کتاب کې راښکاره شوله

په ښکاره او ښرګند ډول نه شو ويلای چې شاعر په پښتو کې د کوم ادبي سبک پيرو دی مګر زياتره اشعار يې مذهبي او تصوفي رنګ لري .

علاوه پر دې یو نیم عشقي غزلې او چاربیتې هم لري نو په دې حساب ورته د رحمان بابا د لارې ملګری ویلای شو.

د غندنې په برخه کې د قسیم الله طالب اشعار په سیمه کې زیات مروج او مشهور دي، په اولس کې که چا د اخلاقي معیارونو په خلاف کوم کار کولو نو د شاعر له خوا غندل کیدو. وګورئ په لاندینې شعر کې یو ملا چې په ګېډه کې ډېر حرسناك دی داسې غندي:

ډېر دی حرسناك په ماکولې کې د غونډې ملا
بنادیه ورته نه شې که واکدارشې د کونډې ملا

ډېر دی حرسناك که چېرته ګېنې په کاسه باندې
لاس کاندي شکرې ته ډوډۍ واخلي په غوسه باندې

دا عادت دې پرېږدي خوګه به یې کاندې پړې د ننګه ملا
ډېر دی حرسناك په ماکولې کې د غونډې ملا

د قسیم الله طالب داسې اشعار هم شته چې قوي انتقادي روحیه پکې نغښتې ده لکه په لاندینې شعر کې چې د غوبي او انسان سوال او ځواب یې انځور کړې دی:

## شعر

غوبي د محمد جان دی هلته پروت دی په اوبو کې
تش ګوګه دی پاتې شوی غوښه نه لري هډو کې

غوبي ویل محمدجانه ډېر شوم خوار
قسم به درته وکړم چې نور ونه کړمه کار
راوغواړه چاړه زوی ته ناري کړه په ستلوار
اوس مړم نه پاتې کېږم خدای ته ډېریم په توبوکې

---

توبې خدای ته وباسم چې دې داسې کړمه خوار
نری رنځ په ما ایښی دی خاوند پروردګار
هډوکي مې سکاره شو محمدجانه ستا په کار
ځوان چې وم قوت کې تېل دې نه ځاییده دبو کې

---

بیا وویل غوبي چې محمدجانه خدای دې خوار کا
بې ثمره مخنثه !! خدای به ما درنه مردار کا
بیا وویل محمدجان چې درته در به کمبله کړم
ومرچك او هرېړه به درته در کړم په غوړوکې (۱)

---

د قسیم الله طالب یادونه د ننګرهار د یو مشهوراولسي
شاعر حضرت ولي له خوا په یوه چاربیته کې داسې شوې ده
د چاربیتې د کسر بند دا دی :

---

(۱) محمدجان د هغه ځای د یو تېلي نوم و

ما د شاعر سره وعده ایښې ده کال
په وطن کې یم معلوم لکه د لال
په کلاوو کې عمرشاه زرجان مې شال
د کوټ طالب مې په تندي کې دی شین خال
په هوا باندې مرغانو ځواب یوسئ عمرګل له
دولسم په میاشت کې تللی وم کابل له

---

د قسیم الله طالب لاندنۍ چاربیته په عروض برابره او هم د اعنات یا التزام مالا یلزم صنعت پکې په کار اچول شوی دی .

## چاربیته

شاه اغوستی تور رنګین    توره به یې سینه کاندي
توره د شاه پرتوګ دی نا    تور ګیبي یې تال وهي
توري یې لا پرتوګ دی نا    توره پردی مال وهي
د تورې دا دستور دی نا    د تور په مخ رومال وهي
تور وربل یې تار په تار    توره یې چې شانه کاندي

---

تورې تور اغوستی    توره یې د لاله ځي
د تورې زلفې خوشکې دي    توره تر میهاله ځي
تور او تور پرې وشکېدي    توره نبه سمباله ځي
تور ور پسې ژاړي نا    که توره د لاسه کاندي

---

تور د تورې يار دی نا — تور خالونه کت لري
د تور پسې بيمار دی نا — توره يار په پټ لري
تور د شاه سيتکاری دی نا — تور کرم نوبت لري
تور طالب جان شو رنځور
د تورو معامله کاندي

---

قسيم الله طالب علاوه پر ساده چاربيتو ځنځيري چاربيتې هم لري، د مثال په توګه يې د يوې ځنځيري چاربيتې د کسر بند دلته رانقلوم :

نن دې ايښی د ابرو په مخ ګې خال — پرې بند شوم في الحال
ځوند وتې مې شو خراب
په درګې درته پروت يم موتې نه شوم په وصال دی — کړې بم بد مې حال
په شان د مجنون

---

د قسيم الله طالب اشعار يوازې تصوفي نه دي، عشقي غونډې چاربيتې هم لري

## چاربيته

ستا په چار ګل باندې د سرو زرو مناری دي
زلفې دې پيچرې دي

---

سپين څادر دې باغ همدا مې د زړه داغ
کړې په چرګ بانګ کلونو مړاوې پنجرې دي

---

را دې کړو ځواب ځمه په شتاب
ستا د لاسه ډکې په عاشقو هديرې دي

---

شان د درخانۍ لرې ښايست د ښاپيرۍ لرې
ما د ادم خان په شانې کړې شوکيرې دي

---

ژړې «طالب جان» ورکه سره لبان
ورکه سپينه خوله په هر طرف د غم نارې دي

---

او س ئې يوه داسې چاربيته دلته رانقلوو، کومه چې يو سندرغاړې ئې د بل څخه ځواب غواړي او يا به ئې ورباندې مقابل لورى خفه کولو (۱).

شاګرده وايه کوم دي اته ستورې د اسمان
دوه ځلې شپه کې خپږې جواب غوارم په ميدان

---

(۱) دا چاربيته هم پوره نه ښکارې .

شاګرده وایه کوم دي اته ستوري بېلا بېل
د شمال په لور ولاړ دي راسره مه کوه ځېل
نور جګ شه په ځواب کې یو ذره ونه کړې ډېل
وهم دې په څېړه یا وباسم دې چشمان

---



شاګرده یو مې ولید عجیبه څیز معتبر
یو کېږه، دوه یې خولې دي درته وایم په ځیر ځور
بې اوره خوراک نه کا یکې وکه تصور
په نس کې یې دریاب دی پرې پوهېږي عاقلان

---

شاګرده څلورم سوال کومه زه له تا نه
باران چې نازل کېږي دروازې له کوم اسمانه
بل برق د څه نه کېږي چې رڼا یې ده بېشانه
احوال که در معلوم وي ما خبر که په بیان

---

بیا یې وویل شاګرده زه یو سوال کومه نور
د «الف» او د «س» منځ کې هغه څه شی دی ظهور
ځواب درسره نه سته رنګه دې ورک شه د غل خور
درانه غوږونه ګرځې لکه خر د بیابان

---

بیا یې وویل شاګرده څه دی نوم د هغه مار
چې چاپیر دی له دنیا نه په قدرت د کردګار
بیا نوم د هغه خر څه دی جواب مې که تیار
چې سور به پرې روان وي مهدي اخر زمان

---

# ۵- عبدالحنان طالب

عبدالحنان طالب د ننګرهار د روداتو د حصارک او سیدونکی دی، ژوندی یې تر ۱۲۹۵ هـ پورې اټکولی شو، د پښتو یو خوږ ژبی ولسي شاعر دی او په تېر عمر یې د مذهبي علومو سره مینه پیدا کړه او په دې برخه کې یې یوڅه برې هم ترلاسه کړې، په شعر کې یې طالب تخلص کاوه.

وروسته بیا د زماني ایجاباتو د ده تګ لاره بدله کړه او په کسب و کار یې شروع وکړه. په شعر کې یې عشقي رنګ زیات لیدل کیږي او س هم د سیمې پښتانه سندرغاړي د ده په شعرونو د دېرو او حجرو محفل تودوي، د اشعارو د مجموعې په هکله یې څه معلومات څرګند نه دي راغلي، د لته یې یو غزل د نمونې په توګه وړاندې کوم.

# غزل

د محبوبې لیدل هسې مزه دار و
خوار مین ورته له وړایه ناقرار و

په جبین یې د سرو ټیک ځلیده هسې
د ابرو په منځ یې شین خال تانه دار و

کږې وروځې یې لیندې د باجوړ دي
بانه غشي یې ویشتلو ته تیار و

لوړه پوزه ، سرې شونډې، سپین غاښونه
ټول حکمت ورکې موجود د کردګار و

هسکه غاړه یې د هوسۍ په شان ښایسته وه
د پاولو او چمکلو پړې شرنګهار و

زه طالب عبدالحنان تل ځکه ژاړم
چې زما مین نصیب دا هسې خوار و (۱)

---

(۱) پښتانه شعرا، دریم ټوک عبدالحنان طالب (پښتو ټولنه ۱۳۴۲ ش) ۷۲۴ مخ .

# ٦ـ طالب

طالب په کندهار کې د ۱۳۰۰ هـ په شاوخوا کې اوسیده.
د طالب اشعار په ملي او ولسي لهجه کې زیات شهرت لري، د ده
اشعار زیات د ښځیانو مینې ښکارندوی دي، ژوند یې ډیر
لاابالیانه او سرګردانه تیرکړی، په هر ځای کې ځمکه وربانده
توده شوې ځکه په عشق کې یې زړه بایللی و. دا هم باید ووایو
چې دغه طالب د علم د طالبانو له جملې څخه نه دی، د اشعارو
نمونې یې په لاندې ډول وګورئ. (۱)

---

(۱) پښتانه شعراء ـ دریم ټوک. طالب (پښتو ټولنه
۱۳۴۲ ش) ۷٦۸ مخ.

## غــزل

پورته کړه له خوابه چشمان | ژاړي عاشقان په ارمان
سترګې دې په ناز کړې تورې | لمبې دې په ماخوار کړې پورې
راشه د عشق په لوري | بوی دې ځي د مشکو ریحان
ستا د عشق پر مادی تاخون | ماله باید نه دی ژوندون
حال دې کړو زما د مجنون | نه راځي په لوري جانان
وایم دا غـزل عجبه | راشه زما د زړه مطلبه
غم دور کړه د خوار طالبه | ته که پرله پوري لبان (۱)

## بــدله

ښکلي دې شترګې ولې سرې دي | ته واوړې د ې دي ژړلي
یاره کوږ بانه دي غشي | عاشقان دې پرې ویشلي
زیارتو لره به ځمه | خیل اشنا به یادومه
د ژوندون مې لاس په سر شو | ننګوم د لحد مړي
نه طالب غریب فریاد کړ | چې دا خیل جانان رایاد کړ
د عثمان دې کور خراب شي | ښکلي بیا دي څه ویلي

---

(۱) بهار جانان - د مولوي محمد شریف ټولونه - پېښور ۱۳۰۶ ش
کال - ۲۱ مخ .

# ۷- لوګری طالب

د دې طالب خپل نوم محمد علي او د پلار نوم محمد سرور
دی . په قوم ستانیزی چې ستانیزي په سلیمان خیلو کې یوه پښه
ده ، په پنځلسم د جون په ۱۹۳٦ع کال په پاړاچنار کې
زیږیدلی دی . د منځنۍ زده کړې تر څنګ وروسته د لوړې زده کړې
لپاره کابل ته راغی او بیا وروسته له کابله ګرډیز ، کوړمې
پېښور او سوات ته لاړ ، تر تحصیل وروسته پاړاچنار ته
ستون شو . (۱)

ښاغلی همیش خلیل لیکي چې : « په ۱۹۵۷ع کال یې

---

(۱) بېنوا عبدالروف - اوسني لیکوال دوهم ټوک - طالب لوګری
دولتي مطبعه ۱۳۴۱ ش - ۸۵۹ - ۸٦۰ مخونه .

د منشي فاضل امتحان پاس کړو . « د طالبي په وخت کې خپلو همځولو طالب بللو ، ځکه ئې هم دغه تخلص انتخاب کړو . د کلام نمونې یې په لاندې ډول دي . (۱)

## غــزل

چې جانان چمن ته رو - رو په قدم شي
ګلان وارۀ مــړاوي شوي تازه دم شي
هــر عاشق ته چې د مهــر ګــتل وکړي
که ایله یې چېرته وچ د سترګو نم شي
چې بــرېښنا یې د غابښونو په نرګس شي
د شغلې نه یې د سترګو نظر کم شي
چې کړي پــورته یار د مینې دواړه سترګې
رانه لــرې بیا د دواړه جهان غم شي
د باغ سـروې که هـرڅو الف - الف شي
چې یار ووینې د دال په شان یې خم شي
تول بـدن یې بې ندېتې سوری غلبیل شي
چې د یار د بڼو عشق چاته مم شي

---

(۱) همیش خلیل ، پښتانه لیکوال ، لومړی چاپ ـ طالب لو ګــړه (پېښور ۱۹۵۸ ع ) ۳۳۲ـ۳۳۳ مخونه .

چې مطلوب را ښکاره شي له درشله
د طالب په سترګو را ورته شبنم شي

## غــزل

زندګي اوس خو دلته ګرانه شوله
ماڼۍ د ننګ پرېوته ورانه شوله
چې مې غريب په تن بربنډ وليدو
وينه مې ځان کې سرګردانه شوله
دا ن عملي معما شکر دی
چې راته ګرانه وه اسانه شوله
قدم قدم باندې فساد فساد دی
زمانه لاړه بې ايمانه شوله
وايي عالمه چې به اوس څه کيږي
د ژوند ليلى چې مې ناتوانه شوله
په ننګ اوپت باندې چې سر ورکوم
جوړه زما مينه اوس ځوانه شوله
طالب په ريتو ريتو خود به ژاړي
د قنج مکيز ليلى پښېمانه شوله

طالب لوګري په شعر کې د قوي لاس خاوند دی، د

اشعارو د مجموعې په شکله یې اوس څه پته نه لګي او نه یې
په کومه تذکره کې د دېوان یا د شعرونو د مجموعې یادونه
شوې ده خو متفرق اشعار یې د پښتو په مجلو او جریدو
کې خپاره شوي دي . د ده د اشعارو هنر افریني په دې کې ده
چې زیاتره ولسي رنګ لري او د خوارې کښې خلکو د ځورونو
انعکاس پکې له ورایه معلومیږي ، د مثال په توګه یې لاندې
شعر وګورئ .

## د اختر !!

په سر سرتور دی، غریب نهر دی
دا څه اختر دی ؟ دا څه اختر دی ؟
دی حقیقت کې عید د عنیانو
د غریب هر وخت پېټی په سر دی

---

د چا په زړه کې د غم تپه وي
د چا په ژبه د عیش نغمه وي
یالویه خدایه ! هغوته ژاړم
په چا اختر هم چې عاشوره وي (۱)

---

(۱) وګورئ د غنچې مجله، ۱۹۶۱ ع کال، دولسمه ګڼه ، دیارلسم مخ .

# ۸- ملارستم طالب

ملارستم د مومندخان زوی د ننگرهار ولایت د مومندرې ولسوالۍ د گردي غوث د کلي یو تکړه ولسي شاعر دی چې په ۱۳۰۲ لمریز کال په نوموړي کلي کې زېږېدلی دی.

دی لا وړکی و چې د خپله پلاره یې لومړنۍ زده کړه وکړه او بیا د اتو- نهو کلو په عمر پېښور ته لاړ او په زده کړه یې پیل وکړ، له یو څه وخت نه وروسته له پېښور نه بېرته کلي ته راغی او د ننگرهار د سیمې د ځینو دیني پوهانو نه یې زده کړه وکړه. یو څه وخت د دکې په کلي او بیا یې تقریباً درې کاله په شینوارو کې لوست ووایه. همدارنگه د کابل په کوهدامن کې یې هم یو څه وخت د طالب په توگه تېر کړی. په دیني کتابونو کې یې فقه، نظم، صرف، نحو، منطق او نور... لوستي دي

ملا رستم تقریباً د یوویشت (۲۱) کلو راپه دې خوا د ګردي غوڅ د «لنډۍ» په کلي کې ملا امام دی چې په دا دومره وخت کې یې ډېرو شاګردانو ته درس ورکړی. اوس هم چې عمر (۵۵) کلو ته رسیږي په هماغه دنده بوخت دی.

دی له ډېر پخوانه د شعر او شاعرۍ سره مینه لري او شعرونه یې د ساز سرود سره یو ځای د ولسي سندرغاړو له خوا ویل کیږي چې ټول خلک ورسره ډېره مینه لري، د شعرونو ځنې یې د رحمان بابا د رنګینه اشعارو بوی څرګندیږي او د همدې تصوفي مکتب له پیروانو څخه دی، په خپلو اشعارو کې یې زیاتې ټولنیزې نیمګړتیاوې په ګوته کړي او د شعر په رنګینو تارونو کې یې په ډېرو ټولنیزو ستونځو په چیغو چیغو ژړلي دي. البته دا ژړا له غیرته ډکه ژړا ده چې یوا ځې ژړا یې نه شو بللی او د ژوند د یوه اړخ انځور یکې هم په ښه ډول ترسیم شوی دی.

ملا رستم په خپلو اشعارو کې د طالب یا طالب جان او ګردیوال دواړه نومونه راوړي چې البته لومړی نوم یا تخلص د ده د طالبۍ د مسلک په اساس او دویم د کلي په اساس دی. نوموړی ډېر اشعار لري چې هم د موضوع له پلوه ډېر دي لکه عشقي، ټولنیز، تصوفي او نور او هم د بڼې له نظره ډېرې بیلګې لري لکه بوللـه، چاربیته، مقام، غزل، څلوریزه، لوبه کیسې او نور.

دا دی موږ هم د ده د اشعارو څو بېلګې د ده د شاعرۍ د څرګندولو په غرض دلته رانقلوو. (۱)

## دعا

ای د لوی قدرت خاونده ذالجلاله
پادشاهي دې ده قايمه بې زواله
د ګناه پېټي مې وړځ په وړځ درنېږي
ای خالقه فريادي يم ستا درګاله
ته غفور يې هم رحيم يې هم رحمان يې
د بخښش اميد په کار دی هر اشاله
په قدرت سره دې ټول جهان تکميل کړه
د عزت چوکۍ دې ورکړه ادم بي بي حواله
طالب جان به ارماني لاړ شي د دنيانه
تل پرې خپل رحم کرم کوه جلاله

---

(۱) د ملا رستم طالب په هکله ياد دښتونه را ته ګران ملګري او ځوان ليکوال محمد زرين کامران راکړي، زه يې د غې ادبي مرستي ډېره ډېره مننه کوم.

# غــــزل

تورې سترګې - سپین بشرې د اشنا
شینکی خال په مخ قمرې د اشنا
تودې وروځې یې لیندې بانه یې غشي
ما پرې ولې دا خبرې د اشنا
شرخه پوزه یې الف د سپینو زرو
سور پېزوان پرې لکه لمرمې د اشنا
سره لبان یې، سپین غابنونه بنایسته خولې
شته خبرو کې اثر مې د اشنا
سپینه غاړه کې یې مېراته د سرو هاروته
پرې جړاو دي لال ګوهر مې د اشنا
تورې زلفې یې سینه باندې زنځیرې
ښاماران دي په صدر مې د اشنا
سم قامت یې لکه سرو د بوستاندو
ګرد یواله شه نوکر مې د اشنا

---

ملا رستم طالب په پښتو ادب کې یو د هغه شاعرانو
څخه دی چې زیاتې مذهبي کیسې یې په لنډ ډول سره منظوم
کړې دي چې د بېلګې په ډول به یې د هغه کیسې د سر او پای
برخه دلته راوړم کومه چې د حضرت عمر (رض) د عدالت

په برخه کې ده ، دغه کيسه اته ځلو پښت بيتونه لري .

## دکيسې د سر برخه

چې دوره د خلافت راغله عمر رض ته
ښه کيسه ده غوږ دې ونيسه خبر ته
دا يې خوی ، دا يې عادت ، دا يې کردار و
د خوارانو او بېنواوو مدد ګار و
د سخا اواز يې خور په درسته جهان و
پادشاهان د زمانې ورته حيران وو
په خپل عصر کې بېشانه دی عادل و
خوار غريب يې په انصاف باندې قايل و
هره شپه به ګرځيدلو کور په کور
داسې نه چې څوک په چا وکاندي زور
ژه به پروت يمه بې غمه په بستر
مظلومان به راته ګرځي لر و بر
مي بايد چې ژه يې وکړمه پوښتنه
چې سبا روز جزا شته دی غوښتنه
يو مقام ته رسيده شو ناګهانه
يوه خېمه ورته له ورايه شوه عيانه

---

## د کیسې د پای برخه

که په دغه زمانه کې وي کوم خان
یا ملک صاحب په لاره وي روان
یو غریب که وي په درد کې گرفتار
د ملک صاحب به پرېږدي دغه لار
ورته وايي به چې لرې شه بدبخته
چرې نه چې په موږ راغه ولې سخته
که یو خان ته یو مسکین وکاندي سوال
چې څه راکړه په نامه د ذاالجلال
وايي به ورک شه د سندرا قدرته پلن یې
دا کیسې چې راته وایې دروغجن یې
لاړ شه چا سره مزدور شه ای کمبخته
سوال حرام دی په ځان مه راوله سخته (۱)
دا دی حال د دې خانانو - ملکانو
موږ به چاته فریاد وکړو هوښیارانو
نوره بس دی دا کیسه شوله تمامه
طالب جانه زمانه شوه دراسې خامه

---

(۱) د «سخته» کلمه د دریم بیت نه وروسته بیا تکراراً راغلې ده او په قافیه ورته د جلي ایطاء عیب وایي .

# ۹ـ محمّد رسول طالب

محمد رسول طالب د محمد قیس ساپي زوی د کونړ د بوډیالۍ او سیدونکی د پښتو ژبې تکړه ولسي شاعر دی چې وخت د نور درې په ښووځي کې ملازم و .

نوموړی په ژوند کې ډیر لاالهانده او سرگردانه یو ځای او بل ځای گرځیدلی دی .

حتی یو وخت د خپل وراره د مړینې نه وروسته په امام نبي بابا کې چې د سیمې یو مشهور زیارت دی مینجور و . (۱)

اشعار یې زیاتره په ملي وزن برابر دي . په ۱۳۰۱ش

---

(۱) زیری، ۱۳۵۴ ش کال، ۳۱ غبرگولی، ۱۲ مه گڼه، ۲ مخ .

کال زېږېدلی او په ۱۳۴۲ ش کال وفات شوی دی . (۱)
اوس به يې د بېلگې په ډول يوه بگتۍ د لته
رانقل کړو .

## بگتۍ

اوربل دې جلې په تندې خور
سېځې عاشقان ولې په اور

---

اوربل دې جلې کړه غمگين
خوړلی دې يم تور لونگين
ياری دې کړلو زړه راته خوږين
هيش ورپسې گرځم سرتور

---

هيش ورپسې يم په هيبت
بېلتون دې کړمه ډېر ناطاقت
نن جوړ دی پر ما د غم قيامت
مغرورې جلې ظلم دې زور

---

(۱) زلمی هېوادمل ، فرهنگ زبان و ادبيات پښتو
طالب محمدرسول ، ۲۸۳ مخ .

مغروري جلی، کړي ﺩ ولونه
په زړه يې راکړي، سوي داغونه
زما له قصده کوي، دا مکروبنه
لمسون دی کړی، نن ورته مور

---

اوربل دي جلی دی تار په تار
ستي يې کړمه د عشق په نار
غمونه يې کړل په ما انبار
محمدرسول دی له رنګه تور

---

# ۱۰- وزیر طالب

وزیر طالب اصلاً د کوټې اوسېدونکی د ی او د خیل وخت د مشهورو عالمانو او په احادیثو کې د لوی لاس خاوند دی . د لومړي ځل له پاره اوس د ده د پېژندګلوۍ یادونه وشوه، په شعر کې طالب تخلص کوي ، نوموړی اوس ډېر سپین ږیری شوی او په سوات کې اوسېږي . د یو نعت نه پرته یې د اشعارو نورې نمونې زموږ په لاس کې نه شته .

**نعت**

یارسول الله ؐ عربي ماه جبین تابان یې
رحمة اللعلمین سرداره
راحت دل سوخته من خوبرو جانان یې
ای په کل نبیانو کې مختاره

ته وې په جنت کې د ادم صفی الله سره
اور کې د نمرود وې ابراهیم خلیل الله سره
هم وې په میدان د قربانۍ ذبیح الله سره
نوح نبی الله سره ملګری د طوفان یې
رحمة اللعلمین سردار ره

---

نوم لیکلی ستا غمي کې پټ د سلیمان و
ځکه یې تابع په دغه مهر کل جهان و
راز که د موسیٰ په کوه طور کې له سبحان و
میلمه کړی رب العزت پاس په لامکان و
رحمة اللعلمین سردار ره

---

راڅې ورو تشریف د کل په ورځې دیثرب ګله
ودې کړو هجرت د کل په ورځې منتخب ګله
لاړې له دنیانه د عجم او د عرب ګله
تلی د کل په ورځې د دنیا له ګلستان یې
رحمة اللعلمین سردار ره

---

شمعه کې ستا نور دی ځان پرې سیځي پتنګان
ای حبیبه ګورې دې هر ګل کې بلبلان
زه یواځې نه یم هر عاشق له تا قربان
ای زما دلبره د هر چا د زړه ارمان یې
رحمة اللعلمین سرداره

---

شومه سودایي، شو رانه پاتې صبر فمیر
ای حبیبه د بریه په درد دا ستا زهیر
نوم مي طالبانو کې مسکین طالب وزیر
ځار شمه له تانه ته زما دین او ایمان یې
رحمة اللعلمین سرداریې

---

# ۱۱- طالب الجامعیٔ

د بانگ حرم په نوم د پښتو شعرونو یوه کوچنی رساله یو وخت لاس ته راغله چې د رسالې په پوښ یې داسې لیکلي دي :

„ بانگ حرم بزبان افغانی ، تالیف حقیر طالب الجامعی ، ۱۳۸۸ هـ ، ۱۹۶۸ ع ، یونیورسټی بك ایجنسی خیبر بازار پېښور ښار . "

کله مې چې دغه رساله له سر نه تر پایه ولوستله داسې یو شعر ورکې پیدا نه شو چې د شاعر د ځای او پوره پېژند ګلوۍ ښکارندوی وي . کتاب بې مقدمې په شپېتو مخونو کې چاپ شوی . د راغوندونکي او مهتمم نوم هم نه لري ، بنا یې کتاب په خپله د مؤلف په اهتمام وي او یا د نورو تجارتي خپرونو

په شان یې مقدمې نشر شوي وي . خو په هر حال د کتاب
په سر کې د شاعر پېژندنه نه ده شوې ، نو موږ ونه شو
کولای چې د نوموړي په باب پوره معلومات وړاندې کړو
مگر په غالب گومان د ومره ویلای شو چې اوس به هم
ژوندی وي .

د تالیفاتو په هکله یې غیر د هغې کوچنۍ شعري رسالې
څخه نور منثور او منظوم اثار زموږ لاس ته نه دي راغلي .

اوس به د بانک حرم د شعري مجموعې څخه یو مبنی
شعر د لته رانقل کړو :

## در تعریف باری تعالیٰ

نه په نام د هغه رب کړم ابتدا
چې رحمٰن دی هم رحیم دی تر هر چا
هم اول دی هم اخر دی هم ظاهر دی
هم باطن دی پادشاهي کړي په ربښتیا
حکومت یې همیشه دی بې زواله
اوس هغه شان لکه خرنک و فردا
خدای احد دی پادشاهي کاندي په خپله
هر یو شی یې کړي په ژبه ده ثنا
نه یې ضد شته نه یې ند شته لاشریک دی
نه یې مثل نه مثال شته په هر خوا

بې ستونه يې اسمان دی دروند
لس، سپوږمۍ، ستوري يې دي پکې پيدا
شپه او ورځ يې جوړه کړې په قدرته
له افتاب سره يې جوړه ورځ رڼا
په حکمت سره يې ځمکه جوړه کړې
همېشه پکې جاري يې ده هـــــوا
بيا په ځمکه دا لوی غرونو ته نظر کړه
تماشا يې بيا ځنګل او د صحرا
بيا په خلک چې شي تنګي باران پرې وکړي
په يوه کړه جاری کاندي دريـــا
ګوره بحر شور چې يو بل خواته دروي
هيڅ د خدای بې امري نه کاندي ګويا
دريا نيل چې په ملک مصر کې بهېږي
نجريا کې شي په ځمکه غايب صفا
ګوره خدای داسې قادر دی په هر څيز کې
په حکمت سره يې هر څيز دی پيدا
محبت مينه د خدای سره په کار ده
بې له خدايه هيڅوک نه لري بقا
زه طالب د هغه رب ثنا خواني کړم
چې خالق دی د جمله وارو اشـــيا

---

# ۱۲ـ شمس الدین طالب

شمس الدین طالب د ۱۳۰۰ هـ په شاوخوا کې د کندهار د «حوا» د کوچې او سیدونکی او د ملا میر یحیی معاصر دی.
نوموړی د دیني علومو طالب العلم او فی البدیهه شاعر و چې شعري مقابلې یې د ملا میر یحیی سره اوس هم د کندهار د خلکو په خولو کې پاتې دي. (۱)

بنه ابتدا وه په بسم الله وه ـ وایم حمد و ثنا
که شهربندیا خواب چې غوښتی وـ میر یحیی

د شعر نمونې یې ښاغلی زلمي هیواد مل د سید احمد چې د گلزار سید احمد مدون هم دی اخیستې دي.

---

(۱) فرهنگ زبان وادبیات پښتو ـ زلمی هیواد مل ـ شمس الدین طالب ۲۵۵ مخ.

# ۱۳- رشید طالب

رشید طالب د پښتو ژبې یو کیسه ویونکی شاعر دی چې د پکتیا ولایت د ځاځیو په اریوب کې اوسیده. پلار یې ملا لعل بېګ نومیده او اخون مصطفی یې نیکه او یا پیر استاد و. لکه چې وايي :

د ملا لعل بېګ فرزند یم د اخون صاحب د لبندیم
مصطفی اخون یې نوم دی دی زموږ وارو پیشوا دی

رشید طالب د تیمورشاه سدوزی همزمانه دی . ده خپل کتاب د ګل سنوبر کیسه په ۱۱۹۴ هـ کال په پښتو نظم اړولې ده .

په دغه کال تیمورشاه د اریوب په لار پېښور ته تللی و ، لکه چې طالب رشید وایي :

پادشاهي د تیمورشاه وه چې پښتو هم د ده اشنا وه
په اریوب چې تېرېدنه په هغه کال پښتو کیدنه

د گل سنوبر د پښتو کیدو کال یې په دې دول ښودلی دی :

د حضرت وو زر سل کاله څلور نوي وو بانډې لا له
په پښتو گل سنوبر شوه په سینه کې مقرر شوه

طالب رشید د ځاځیو د اریوب په سمسوره او ښېرازه ورشو کې او د سپین غره په ښایسته لمنو کې د خپلې مورنۍ ژبې د ژوند او ښایست له پاره کړاوونه گاللي او د پښتو ادب لمن یې د دغې ښکلې خوږې کیسې په کښیدو ښایسته کړې ده . د گل سنوبر کیسه ده د خپلو څلورو ملگرو په سپارښتنه له دري نه په پښتو اړولې ده ، لکه چې وایي :

نور یاران چې څو که هغه وو په مجلس کې چې کېره وو
دغو واړو ووې ما ته چې خبره کړه وتا ته

دا کتاب راته اسان کړه پـه پښتو يې ته عيان کړه
چې ياران سره مين وي گران پـه يـاري هر ښځي
نور د دوی خبره د له ما پـه ستر گو ومنله

---

د طالب رشيد د دغو څلورو يارانو نومونه دا دي :

۱- بابوجان
۲- ملا شيرين خان
۳- ملا رحيم
۴- ملا ولي

رشيد طالب په بنکاره دول وايي چې ما دغه رساله له دري نه په پښتو کړې ده ، لکه چې وايي :

دا رساله پاړسي وه سخته پـه پاړسي ژبه يك لخته

---

د کتاب په اخـر کې وايي :

شکر شکر يا وهـابه چې دي خلاص کړم له کتابه
رساله وه د پـيشـترو ما پښتو کړه په خبرو

---

د گل سنوبر دغه کيسه په روانه او خوږه پښتو ليکل شوې ده . دغه دول لنډه مثنوي له پخوا په پښتو کـې

رواج لري او اته‌چپیزه ورته ویل کېږي . دغه کیسه کې ځای په ځای ټپې او غزلونه هم راغلي دي ، کله چې کیسه ‐ ویونکی سترې شي نو د دې له پاره پکې کومه ټپه یا غزل هم وراچوي . د ګل‌سنوبر پښتو کوونکی هم د کیسه ویونکو د دغه عام قانون پیروي کړې ده ؛ دی د خپل کتاب خوند او معنوي قیمت ته داسې اشاره کوي :

داکتاب چې خوږکه وایینه ‐ په معنوي اګاه شینه
ډېر لذت به ورکوینه ‐ که چېرې خوږکې یې ولولینه

---

د طالب رشید شعر که څه هم روان او ساده دی خو د لوړې درجې شعر ورته نه شو ویلای یعنې په شعر کې یې کوم خاص او چتوالی نه لیدل کېږي بلکې روانې خبرې یې د وزن او قافیې په چوکاټ کې اچولې دي . رشید طالب که څه هم د اریوب په سیمه کې او سیده خو ژبه یې د پښتو د عام ادب د شریکې لارې تابع ده او محلي لغات ورکې ډېر نه لیدل کېږي . د طالب رشید د ژوندانه په باب نور زیات معلومات په لاس نه شته .

د ګل‌سنوبر اصلي کیسه د یونان د زړو کیسو په لړ کې راځي خو په دري ، اردو او پښتو ژبه کې په بېل ‐ بېل ډول ترجمه شوې ده . د ګل‌سنوبر د دغه پښتو کیسه څو کاله پخوا د یوې قلمي نسخې له مخه د میرشرف خان وزیر په سریزه د پېښور

د پښتو اکیډیمۍ له خوا چاپ شوې او د پښتو ادب مینوالو ته وړاندې شوې ده .

په دې کیسه کې د عشق او مینې رنګارنګ پېښې، د دېوانو او پېریانو کیسې ، ناآشنا ـ ناآشنا کارنامې ، جګړې او جنګونه او نورې ډول ـ ډول پېښې راغلي دي . دا کیسه د یو دېو له خوا د یونان یوې شهزادګۍ ته ویلې شوې وه خو هغې بیا پته وساتله او د خپل واده د شرط په توګه یې دا اعلان وکړ چې څوک ماته د دې ځواب راکړي چې ګل په سنوبر څه وکړه ؟ او سنوبر په ګل څه ؟ نو زه به ورسره واده وکړم ، اخر د روم یو شهزاده د ډېرو کړاوونو وروسته د دغې پوښتنې ځواب ورکړ او د دواړو د واده شرط پر ځای شو ـ تر واده وروسته د یونان شهزادګۍ ګل اندامې او د روم شهزاده فیروزشاه اویا (۷۰) کاله په خوشالۍ سره تېر کړل او بیا یې د ژوند کیسه ختمه شوه .

اوس به مونږ د ګل سنوبر د کیسې یو څو نمونې په وروسته ډول راوړو .

## د کیسې د شروع څخه

| | |
|---|---|
| یو پادشاه و په یونان کې | د یونان ښکلي بوستان کې |
| یوسف شاه د ده نامه وه | په هر لوري یې دمدمه وه |
| یوه لور وه تر نوولې | تر افتاب تر ماه ښکلې |

کل د حورې يې صفت و    درست وجود يې جوهر جنت و

چې د دې د سر ویښته وو    له وریښمو نه پاسته وو

غاښ يې سپين تر ملغلرو    چې به دا شوه په خبرو

## د کیسې له منځ څخه

راوي دا رنګه ویلي    په کتاب کې مې لیدلي

شهزاده چې مامور شا    دې وتلی په صحرا

په صحرا و په ښکار تللی    و صحرا ته رسیدلی

ناګهانه سل سورتې    ور ښکار شوې خوبصورتې

چې په دوی کې وه کلانه    د هغوی سوبلید ځانه

دې په لاس کې یو ښه څیز و    ډېر بهتر ښکلی ډېر و

## د کیسې له پای څخه

شهزاده له هغه پسه    پادشاهي واخیسته کسه

عدالت يې په ښه شان کړ    خوار غریب يې ډېر ښادان کړ

بې حسابه يې لښکر شو    زور زور په هر کشور شو

اویا کاله په راحت و    په دا هسې شان شوکت و

ګل اندامه ور سره وه    په اویا کاله ګره وه

د هجران احوال به لاله    در ته نه وایم له قاله . (۱)

---

(۱) پکتیا مجله - پوهاند رښتین - ۱۳۵۵ ش کال - دویمه ګڼه
الب رشید - ګل صنوبر - څلورم مخ .

# ۱۴ـ جمعه ګل طالب

زموږ پیژندنه د نوموړي شاعر په هکله نیمګړې ده ځکه تر اوسه یې یواځې یو بګټی غونډې شعرګوټوته راغلی دی او دا هم په یقین سره نه شو ویلای چې دغه شاعر د چا زوی او د کوم ځای اوسیدونکی دی خو غالباً د ننګرهار د سیمې به وي .

وګورئ د شعر نمونه یې په لاندې ډول ده . (۱)

---

(۱) د طالب جمعه ګل د شعر نمونه د ننګرهار د یو ولسي شاعر د خولې څخه زما یوملګري او ځوان لیکوال بناغلي محمد سراب ماته رالیکلې وه .

جادوګرې جلۍ — نخرې ګرې جلۍ
ځان دې جوړ کړو په خیال — خیالي ګرې جلۍ

---

تور بانه دې شمشېر — سپینه خوله دې پنېر
تا په ما کړې سېر — سېر ګرې جلۍ

---

ما له راوړه مرهم — سپين بازو دې صنم
ته په ما کړې ستم — ستم ګرې جلۍ

---

نه طالب جمعه ګل — یم زخمي په ګوګل
سپینکی مخ لرې ګل — ګل صد برګې جلۍ

---

# ۱۵- طالب‌ګل

طالب‌ګل د اتلسمې عیسوي پېړۍ یو مشهور حماسي
شاعر و ، د پښتونخوا د شعر هار و بهار کې جمزدارمشتر
د ده یوه چاربېته را نقل کړې ده چې په دغه چاربېته کې یې د
پښتنو قهرمانانه مبارزې د انګرېزي استعمار په مقابل کې
په ډاګه بیان کړې دي . رښتیا که دغه چاربېتې ته په غور
سره نظر وشي نو دا به راته ښه جوته شي چې شاعر د
انګرېزي استعمار سره د پښتنو قهرمانانه او بې ساري مبارزې
د شعر په رنګینو الفاظو کې بیان کړې ده . نو په دې اساس
د سیمې یو ژوندی تاریخ یې بللی شو ، دا ځکه چې د انګرېز
استعمار سره د افغاني مبارزینو ایرخ ورکې په ښکاره ډول
انځور شوې دی .

# د بنیر د جنګ چاربیته

معامله جوړه شوه د کفر د اسلام
چې توې شو د حضرت د باغ ګلونه
د انګریز لښکرې راغلې له لاهوره
ځینې توپې غمباره ځینې هاتیان وو
څوک خبر نه وو د دې کافر له زوره
ځینې خره، ځینې تتوان، ځینې سیکان وو
دبدبه یې وه خوره بنیر هره لوره
وزیره د پښتنو بنکلي سپاهیان وو
له دیلنه یې راپورته کړو خپل قام
په ملکا باندې یې جمع کړه فوځونه (۱)

---

په ملکا چې د بره شول مجاهدین
په غزا پسې راغلي وو له لیرې
فرنګي ورته نیولي و دوربین
ورته یې ویل چې شئ زما له مخه لیرې

---

(۱) د پښتونخوا د شعر هار و بهار - جمعدار مستان - د دریم چاپ پښتو ټولنه - ۱۳۵۶ ش کال - ۱۵، ۲۵، ۲۸ مخونه

مولوي وېل ستا به نه کـيږي يقين
موږ ته مـه کوه نرمې نرمې خـبرې
يا به وارو څـو په تا باندې تمام
يا به هـېر کړې کمپنۍ ته حکمونه

---

فرنګي وهندوستان وکـې قـهر (۱)
تاسې څوک يې چې کوئ راسره جنګ
د موږ څونو زما هيڅ نه شته دی شمار
دا ملکا به کړم په تاسو باندې تنګ
مولوي وېل زه به نوله کړم زمیندار
د کنار ملحت به زاو لـم په ننګ
کمشنر وېل زه به ور کړمـه انعام
که چا وکړه په غازيانو ګذارونه

---

د بېګي اخون صاحب راغی له سواته
تکاوڼ يې وويوه پـه انبيـله کې
مغه د کوله پلټن يې وله کړه ميراته
په باطن به ولاړ وو په معامله کې

---

(۱) تور برېښ - عبدالله بختانی - ۱۳۴۷ ش ـ ۲۶ ، ۲۹ مخونه.

ویل نن وبځ د جمعې ده گوري سباته
ځای په ځای به وې مرگو په رساله کې
بنیر والو داړه وکړه مېنه ماښام
په گوزو به یې هر دم کړه گداروته

---

په فرنگ باندې معامله شوله تر ډېره
بېرته تښتي که چا ورکړه وړله لاره
تو به کېږ شو سوات سیمې له بنیره
ډېر عالم شو په کندو کې تربه مردار
دا حمله یې کړه د دوی له مرگه تېره
چې راتله به پښتانه سپرې وار په وار
چې د سوات عالمو وکړه ورته پام
باجوړو له فرنگي وکړه قتلونه

---

باجوړ ویل ده راپېښه له تقدیره
فرنگی له کلکتې شو راروان
که خدای کاندي خلاص به نه شي دا بې پیره
که له دیره پسې راشي عزت خان
څوک خبر نه وو له دې کافر خټکیره
په روپو باندې یې پېرېښود خپل ایمان

د صاحب په مخکې یې ونه کړ سلام
ربه دې وران کاندې د دې کافر ملکونه

---

فرنګی راغی د مره شو په دربندکې
د عیسیٰ زي جرګې ته یې کېښوده قرآن
ویل دا مال دولت به یوسمه په بندکې
دا ملکونه به کړم تاسو بانده یې وران
پښتنو ویل راتله نه شته دی په ژوندکې
صد رحمت شه پرې پوهېږي قبول خان
نه طالب ګل یم د کاکا صاحب غلام
ما د شعر په کار کې ویپیل هارونه

---

طالب ګل خېل ځان د کاکا صاحب په مریدانو کې شمېري .

تر اوسه زموږ معلومات هم ده د اوسیدلو د ځای او نورې مکملې بیوګرافی په هکله نیمګړې دی خو د چاربیتې څخه یې معلومېږي چې د پښې ځایونو ته نږدې اوسیدلی دی . نو ښایي چې د باجوړ او یا د هغه د شاوخوا سیمو اوسیدونکی وي ، ځکه چې شاعر د خپلې سیمې د خلکو زیاته مدحه کړې ده .

---

# ۱۶- طالب جان

نوموړی د پښتو ژبې یو تکړه فکاهي ویونکی شاعر دی ، د شینوارو د لویې ولسوالۍ د مندانکه په کلي کې اوسیږي ، اشعار یې زیاتره په ملي اوزانو برابر دي .

د فرهنګ زبان و ادبیات پښتو مؤلف دغه شاعر خــــــو ګاله وړاندې مړ ښودلی دی یعنې په ۱۳۴۰ش کال مړ شوی (۱) . مګر طالب اوس هــم ژوندی دی او په اینده کې به یې پوره پېژند ګلوي وړاندې کړو .

په بار بار به ثنا وایم د رحمٰن خیل
چې په توتو ماړه کړه طالبان خیل

که رالوېږې ما خبر کړه طالب جانه!
چې چخړیت نه کړې بر ګي بر ګي توتان خیل

د طالب جان دغه شعر اوس هـم د توکو په ډول د سیمې خلکو د طالبانو پسې وایي .

---

(۱) فرهنګ زبان و ادبیات پښتو ، ۲۸۲ مخ .

# ۱۷- تور طالب

موږ تور طالب د يوې چاربيتې څخه پېژنو چې په «توربرېښ» کې عبدالله بختاني رانقل کړې ده ؛ تور طالب پوهاند صديق الله رښتين د باجوړ اوسيدونکی بولي .

د تور طالب د پوره پېژندګلوی په هکله کوم معلومات تر اوسه زموږ ګوتو ته نه دی راغلی ، اوس به يې هغه چاربيته چې په « توربرېښ » کې راغلې ده دلته را نقل کړو .

## دارناوی د عزا چاربيته

عزا د ارناوی وه د شنوتو پو پلی وه
ساپي پرې رژيدل لکه ګلونه د نمير .
تول وو د سره تير (۱)

---

(۱) توربرېښ ، عبدالله بختاني ، د ارناوی عزا ، تور طالب پښتو ټولنه ۱۳۴۷ ش ، ۸۵ - ۸۸ مخونه .

غزا وه په کفارو    غوبل به کېږدي هوښیار
د ټول ساپي سالار و د کونړ میر زمان خان
جبین یې و روښان

---

جبین یې د نرګس و    بدن یې د طاوس و
ور پسې تمام ولس و، هر غازي لکه پتنګ و
اسلام د کفر جنګ و

---

اوه کسه بادران شول    جنت ته ځي روان شول
جنت ته ځي روان شول، حورې تلې ورته چاپېر
ټول وو له سره تېر

---

جنت کې یې دېرې شوې    د ګلو منجرې شوې
د قهر سترګې سرې شوې د حیدر ولې لاړې چېرته
ساپو ورځې په بېرته

---

اوباسئ پسې ټوري    پیالې ګرځوي حورې
ځان مه کړه که تربور یې چې لاړ نه شې له میدانه
ښکاره دې کړه مړانه

---

بنسکاره زلمي د جنګ شو ستانه بېرته په ننګ شو
په سرو وينو کې رنګ شو، ارمانونه دې دوسولي
د شنو توپو بړ لسی وه

---

حيدر چاړه په لاس ورسټون شو په اخلاص
وهل به يې کوڼو پاس، په کفن ګړه ولګه شي
ټول وو له سره تېر

---

دې شېرېږي وکړه توره مور شوله په ده بوره
بدن يې ډک له نوره، افرين شه په قتلان
مزدار يې کړه سګان

---

مورچل کې يې شهسوار و جنت له اميدوار و
ملګري يې سردار و، له ګولو ډکه ځولۍ و
د شنو توپو بړ لسی وه

---

خزان راغی په ګلو شور ګړه شو په بلبلو
جنت د هغو خېل و، چې تمام يې کړه پورې سېر
ټول وو له سره تېر

---

جنت شه ستري قربان  ورځي مير اعظم خان
ورځي مير اعظم خان، لايق د حورو دی کل مست
د خدایٔ په مينه مست

---

د خدایٔ په مينه سرشو  په حُمکه باندي زبرشو
چي روز د خلکو هېرشو، په کفارو يې حمله کړه
ستري غوښه به يې کله کړه

---

ستري غوښي به يې مړه کړي  کفارو به زارۍ کړي
بختيار پسې خوارۍ کړي، د بيرغ څکي لولی وه
د شنو توپو بڼلی وه

---

د نور طالب بيان  ښکاره په درست جهان
نادر مير زمان خان لره به ورکړي عزت ډېر
يتول وو له سره تير (۱)

---

(۱) د پورتنی چاربيتي د کسر بند مخ او وروسته شوی دی.

فوځونوکې ایسار شو　　چا وېل پاتې شهسوار شو
نظر پرې د سرکار شو وې لایق د بادرۍ دی
خود زوی د زمرۍ دی

---

اوچت یې کړې دولۍ کې　　ورورې یې تادۍ کې
تېزابو په ګولۍ کې چې پټې ورکړې درانه
شې طبع به یې پرې سانه

---

چاپېر ترې حکیمان وو　　خدمت ته په بنه شان وو
ولاړ په هر زمان وو ترې پرته لاندې نالۍ وه
د شنو توپو بڼسۍ وه

---

# ۱۸- عبدالرؤف طالب

عبدالرؤف طالب د روانۍ پېړۍ په لومړيو ختونو کې د صوبه سرحد په دېره خېلو کې اوسيده .

فالنامهٔ قرآن عظيم الشان يې په پښتو نظم تاليف کړې ده .

نوموړى شاعر يو اځې د فرهنګ زبان و ادبيات پښتو . له مخې مونږ پېژنو ؛ په پورتني کتاب کې يې د شعر نمونه په لاندې ډول راغلې ده (۱) .

ما طالب عبدالرؤف     د ډېره خيل کې يم معروف
چې مې وکړو ورته فکر     ځکه و مې کړ دا ذکر

---

(۱) فرهنګ زبان و ادبيات پښتو ، ۳۰۷ مخ .

# ۱۹- ولي محمد طالب

نوموړی شاعر د صوبه سرحد اوسیدونکی دی او د ستر و لیکوالو و بحو شاعرانو په ډله کې راځي .

د پښتو ادب په طالبانو کې دا یوا ځني شاعر دی چې زیات تالیفات لري ، هغه تالیفات یې چې موږ ته معلوم دي په لاندې ډول سره دي :

۱- بهادره معشوقه

۲- بیربل نامه

۳- د حجرې محفل

۴- د شېرعالم او میمونۍ کیسه

۵- د چراغ الدین کیسه

۶- د شیخ چلي کیسه

۷- د شیرینې او فرهاد کیسه

۸- د ګل بکاولۍ کیسه

۹- د طالب جان فلکلوریکه کیسه : دغه کیسه عوامي کتب خانې نیو کاکشال په شاهین برقي پریس پشاور په ،۶۴، مخونو کې د ۱۲ × ۱۸ کچه چاپ کړې او د کیسې د خوند ورکیدو له پاره یې ځای ځای ورکې لنډۍ، لوبې او غزلې راوړې دي .

همدغه کیسه په لږه لویه کچه په ،۴۸، مخونو کې د عبدالخالق له خوا هم چاپ شوې ده .

# ۲۰- عبدالقهار طالب

د عبدالقهار طالب په هکله زموږ معلومات نیمګړي دي. نو په هدې توګه موږ ونه شو کولای چې د نوموړي د پیژند ګلوی په باب د اوس له پاره کافي مطالب راوړو. دده هغه شعر چې د « ننګیالی » میاشتنۍ مجلې په پښتونولمبر فوق العاده ګڼې د ۱۴۹- ۱۵۰ مخونو کې چاپ شوی دی دلته رانقلوو، د دغې مجلې د چاپ کال ښه روښانه نه دی لیکن شوی خو دویم جلد شپاړسمه ګڼه ده.

بې واره چیغې

د فتحې شوره کربلا ته وړکړه

لاس د وفا دې بیا اشنا ته وړکړه

موسیٰ ته څه ګوي عصا د لارې
دغه عصا دې نابينا ته ورکړه
توره ته ځان سره خوشبو پته کړه
خپلې شغلې دې د دنياته ورکړه
نورې د وينې مسلې نه ګورې
د مينې باب دغه ګدا ته ورکړه
چپې د اوښکو کې اوس نه اوسمه
دغه حصه د چا خندا ته ورکړه
يا د دنيا نه دا خندا لرې کړه
يا لږ اثر زما ژړا ته ورکړه
يا کړه د ژوند دغه نقشه بدله
يا دغه ژوند زما بل چاته ورکړه
اوس په خوښې د غم وهمونه ګوي
څه اطمينان دې وارخطا ته ورکړه
لږ د وفا په حکمت جوړې پټې
د زخمي زړونو شاوخوا ته ورکړه
يا دې دوستۍ کې څه دليل وړاندې کړه
يا د عنقانوم دې وفا ته ورکړه
يا خو «طالب» ته په خندا کې راشه
يا يې د ټول عمر ژړا ته ورکړه

---

# ۲۱- طالب یوسفزي

طالب یوسفزی موږ د یو غزل له مخې چې د پېښور یونیورسټي د پښتو اکاډیمۍ په پښتو مجله کې راغلی دی پېژنو (۱) داسې ښکاري چې اصل نوم یې طالب او یوسفزی تخلص وي .

د ده د ځای او پېژندنې په هکله موږ پوره معلومات نه دي ترلاسه کړي، خو یوسفزي زیاتره په مردان چارسده او سوات شاوخوا کې استوګن دي .

---

(۱) پښتو مجله - طالب یوسفزی ۱۹۷۶ ع - د مارچ ګڼه (۳۷) مخ .

## غزل

مړاوي دي کاته د وفا غښنبه ده
کوښي د تندي د خندا غښنبه ده

ستا دغه ژړا دخندا غښنبه ده
زما دغه خندا د ژړا غښنبه ده

ستا د هجر شپې ته هم خندېږمه
دغه د راتلونکي سبا غښنبه ده

غښنکه د څيکر ويني پوهيږمه
دا دي د وصال د سبا غښنبه ده

څه به د اشنا په هيجر تنګ شي ؟
هر يو فنا د بقا غښنبه ده

نه د تا د ميني خانقاه کي يم
دلته کي تياره د رڼا غښنبه ده

ښکلو ستاسو غښنبي د طالب پرسر
ستاسو دغه ټوله دنيا غښنبه ده

# ۲۲- صاحب جان تورطالب

د نوموړی اصلي نوم صاحب جان دی او مشهور په تورطالب دی (۱) د پلار نوم يې غلام نبي او په ۱۹۳۷ ع کال کې زېږېدلی دی .

يواځې ديني زده کړه يې کړې ده او د تصوف سره هم علاقه لري ، نن-سبا په سرای غوزنک کې کاروبار کوي . په ځوانۍ کې يې مجلسي شاعري کوله ، نوموړی يو اولسي شاعر دی او د مروتو د ادبي جرگې اعلی سرپرست دی .

---

(۱) ادبي ګلونه اول ټوټک ـ قاسم بنوي ( ۹۱ـ ۹۲ ) مخونه .

د کلام نمونه دا ده :

په ربښتیا وکړه اقرار د محبت بیا
چې پوه شو هغه رقیب په شرارت بیا

شایسته جانانه یو واری مې یار شه
پروا نه لرم د چا په عداوت بیا

زما زړه میینه په تا پیغل چا ته ده
یو ځل راشه سره وکړو مصلحت بیا

چې مین دې کړم وفا راسره نه کړې
کړم درخواست به په ربښتونې عدالت بیا

طالب جانه په سرو سترګو یار ته ژړه
که رضا شه بیا به وکړې شفاعت بیا (۱)

---

(۱) په دې مجموعه کې بل نور طالب هم راغلی، خو هغه نور طالب د باجوړ د شاوخوا سیمې اوسیدونکی دی او دا نور طالب د لکي مروت بنو اوسیدونکی او په سرای نورنګ کې کار و بار کوي .

# ۲۳ـ طالب رحیمی

طالب رحیمي د ۱۳۵۷ ش کال پورې د کندهار د مجلې مدیر و، هغه وخت ما ورته د سوانح په برخه کې لیك استولی و، خو بیا نه چیرته ؟ او دی چیرته ؟

نوموړی لیکوال او شاعر دی، خو زه بترا وسه پورې نه یم موفق شوی چې د لته د هغه د لیکوالۍ او شعر نمونه وړاندې کړم .

# ۲۴- طالب محمد اکبر

محمد اکبر طالب د ملاقطب زوی د ۱۲۹۶ څخه تر ۱۳۵۰ ش کال پورې یو مشهور اولسي شاعر و .

د نوموړي لنډه پیژندنه موږ د "فرهنگ زبان و ادبیات پښتو" څخه رانقل کړې ده . د "فرهنگ زبان و ادبیات پښتو" مؤلف یې د شعر د نمونې څخه یوازې د کسر بند راوړی دی او موږ هغه د لته کټ مټ رانقل کړو .

د شعر نمونه :

طالب محمد اکبره ، غزل و باسه غوره

شاگرد دې کړه خبره ، چې روان د دې د نیا وي

د اسپین څادر یې ستا وي (۱)

---

(۱) فرهنگ زبان و ادبیات پښتو - زلمی هیوادمل ( ۳۳۱ ) مخ .

# ۲۵- ملا قادر طالب

ملا قادر طالب د ننګرهار ولایت د ګوشتې او سیلونکی دی پلار یې حکیم اخونزاده نومیږي ، اصل ټکونه یې د کوټ څخه ګوشتې ته راغلي وو . ملا قادر طالب د خپل نوم سره د ملا او طالب دواړه نوموونه یوځای راوړي .

وګورئ د یو شعر په اخر کې یې خپل تخلص داسې راوړی دی:

زه یم طالب ملا قادر دا مې ګفتار

پیر مې کامل ناپوه شاعر به کړم حصار

ما چې لاس ایښی دی دیار په زلفو چنګو

دا نه لاچې لونګو ونګو ګونګرو دې کاوه شور (۱)

---

(۱) فرهنګ زبان وادبیات پښتو - زلمی هیوادمل (۳۱۸) مخ .

د پورتني شعر څخه معلومیږي چې ملا قادر طالب په پښتو ژبه کې یو خوږ ژبی شاعر دی خو متأسفانه چې د شعري مجموعې یې تر اوسه پورې پته نه لګي .

# ۲۶- طالب جان

طالب جان د یوې بګتي له مخې چې په پښتني سندرې دوهمه برخه کې راغلې ده پېژنو .

ولې دا په یقیني توګه نه شو ویلای چې اصل نوم یې څه دی او د کوم ځای او سیدونکی دی . ځکه چې په دې مجموعه کې ځینې داسې طالبان هم شته چې طالب یا طالب جان یې نوم وي، لکه کندهاری - طالب ، د شینوارو د میدانک طالب جان یا د ننګرهار ولایت د چپرهار د سنګني طالب او ځینو بیا په خپلو اشعارو کې د قافیې د سمون دپاره د طالب جان نوم راوړی وي لکه قسیم الله طالب، ملا رستم طالب او صاحب جان طالب .

موږ پورتنۍ یادونه په دې خاطر وکړه چې تر اوسه پورې دا معلومات نه لرو چې دغه شاعر جلا دی او که د پورتنیو شاعرانو

د ولې څخه کوم يو دی .

د شعر نمونه يې دا ده :

راولېږه د لال کــه غواړې مې وصال وهــلی مې شين خال
وهــلی مي شين خال تاله به يې درکړه قلنګ لرم لباني رنګ

د بګټي په اخـر کې خپل نوم داسې راوړي :

غـزل د طالب جان د سترګو په ګريان د پلره د جــانان
د پار... جانان مي ووېل په دغـه رنګ لرم لباني رنګ (۱)

---

(۱) پښتني سندرې، دوهمه برخه ، ساپی محمد حسن (پښتو ټولنه ۱۳۳۵ ش کال) ۱۸۷ ــ ۱۸۸ مخونه .

# ۲۷- دلاور طالب عمرخېل

دلاور طالب د پښتو ژبې یو پیاوړی حماسه ویونکی شاعر دی چې د دیارلسمې پېړۍ په اواخرو کې یې ژوند کاوه . (۱)

نوموړی په قام غلجی عمرخېل دی ، غوړنیکه یې د میدان د نرخ اوسیدونکی و ، کورنۍ یې په کډه کابل ته راغلې وه چې دی هملته زېږېدلی او لوی شوی دی ، ده هملته د غازي مغل خان میرزایي کوله چې د خپل ځان پېژندنه دیوې منظومې په ترڅ کې په دې توګه کوي :

په میرزا د مغل خان مې دی تشهیر
نوم مې دی دلاورخان په ځان زهیر

---

(۱) حبیب الله رفیع - ادبي ستوري دوهم ټوک ( ۱۹۶ - ۲۰۵ ) مخونه .

په نسب یې غلجي عمرخیل ګوره
خصوصاً علي زايي واوره ای ورورہ !

اعلی جد مې و د نرخ ماوا حنیف
شیخ صاحب کلی لرم اوس ځای شریف

شیخ مصري باندې تشهیر لري دلبره !
دی پیشوا د ټولو اولیاء غوره

شیخ صاحب ته شیخ مصري له دې سببه
وایي خلق، ده مصري ښتوره عجبه

ټل ښکاره یې کرامات دي په عالم کې
د ښمنان یې د نومو دي په ماتم کې

بل هرڅوک چې غرض دار ورلره ورشي
په مراد باندې فی الحاله بهرورشي

بې مراده هیڅوک نه راځي ای جانه !
له دې پیره دا خبره ده عیانه

هم اولاد د دغه پیر دی خوب خصاله
له اخلاق حمیده سپې مالامال

په کامه کې یې ثاني نه شته یارانو !
نیکخوی په نیک خصلت کې سامعانو

بلکې یو ملک یې نه شته دی مثال
دی بې حده خوب اقواله - خوش افعال

دلاور طالب د پښتو ژبې په حماسه او قصه ویونکو شاعرانو کې راځي .

د ده دوه نیمګړې آثار راپاتې دي چې یو یې د مغل خان «جنګنامه» او بل یې « بهار دانش » نومیږي .

غازي مغل خان یو ملي مبارز پښتون تېر شوی او د انګریزانو سره یې د پښتنو په دوه یم جنګ کې ډېره مېړانه ښکاره کړې ده . څرنګه چې دلاور طالب د دې غازي میرزا و او د جنګ په ټولو محاذونو کې ورسره ملګری و ، نو د جنګ ټول واقعات یې په سترګو لیدلي او بیا یې د یوې جنګنامې په بڼه اړولي دي .

د جنګنامې ترلاسه شوې نسخه د پیل له خوا بشپړه ده خو د پای له خوا د لیکلو څخه پاتې ده او هم یې د منځ ځو پاڼې ولیدلي دي . د ترلاسه شوې جنګنامې د بیتونو شمېر زرو ته رسیږي خو د جنګنامې د عنوانونو فهرست ښیي چې د جنګنامې یوه برخه د لیکلو څخه پاتې وې .

د جنګنامې د سر بیتونه دا دي :

په نامه د هغه خدای مې دا بیان دی
چې یې نوم یې په نومونو کې سبحان دی

هم صانع دی د جمله وو مصنوعاتو
هم رازق دی د همه وو مرزوقاتو

بل اثر یې د « بهار دانش » په نوم یادیږي او وایي چې د عنایت الله

له «بهار دانش» څخه مې په پښتو کړی دی. په دې اثر کې د ښځو مکرونه راغلي او متن يې د «چهار درویش» له مشهور اثر سره ورته دی چې په پښتو کې ملا نعمت الله نظم کړی او مولوي عبدالرحمن په نثر ژباړلی دی. د دغې اثر د سر برخه شته او د پای برخه يې نه ده کښېله شوې. همدا راز د سوموري متفرق اشعار هم لري چې يوه منظومه يې د ځان د پېژندګلو په باب موږ مخکې راوړه.

د ميرزا دلاور طالب ټول اثار په يوه مجموعه کې راغلي او په نسخه کې د لاس وهنو، سهوونو او زياتونو څخه داسې ښکاري چې نسخه په خپله د دلاور طالب په ليک وي.

د ده آثار د تاليف کال يا کومه بله سنه نه لري خو د مجموعې په پښتي کې د مؤلف په خط د يوې طلاقنامې مسوده کښېله شوې چې سنه يې ۱۲۹۸ هـ ق ده، نو کېدای شي چې د ده د آثارو مجموعه په همدې کال قلمي شوې وي.

اوس به موږ د مغل خان د جنګنامې د فصل يوه برخه چې د انګريزانو سره يې د برياله غزا يوه صحنه پکې تمثيل کړې ده، دلته را نقل کړو:

د سر بيتونه:

روايت که په داشان راويان د دين
چې لښکر د اسلام کل په دين کې سپين

راحاضر په نغاره شـــو د نواب
نواب د بـر کاوه په دوی باندې شتاب
گرځیده به په تمام لښکر کې جانه
شاباسی به یې وایه له هــره شـانه

د پای بیتونه :

چې اوازيې د نصرت په جهان خور شه
خوشـالي شـوه ، خورسندي په هر کور شه
مدعا چې وخپل کورته رسـیدنه
له حد زیات بې حد یې وکړه خیراتونه
په گلشن د شجاعت کې کړه گل
ای طالبه د زاغانو یې ساته تل
خدای دې رفع کړي زغرف له دې بوستانه
چې مرغې تل بلبلان کـړ ځي خرامانه

# ۲۸- د تنکي تکو طالبان

## (څلور بېل بېل شاعران)

د پوهنتني عنوان لاندې بناغلي دردمند د ۱۳۵۰ ش کال د کابل مجلې په اتمه گڼه کې د نورو شاعرانو په لړ کې د دري تنو سندرغاړو طالبانو چې عبارت دي د محمد طالب، اخوند میا طالب او مست طالب څخه په خپله مقاله کې ذکر راوړي دی. خو د اشعارو د نمونو په شکله یې څه نه دي لیکل شوي.

همدارنگه د دغه عنوان لاندې بناغلي دردمند د ۱۳۵۱ هـ ش کال د کابل مجلې په نهمه گڼه کې د یو بل طالب یوه څاربیته چې د سوال- ځواب په دول ده (۱) راوړې ده چې د پښتو په اولسي

---

(۱) کابل مجله ۱۳۵۱ هـ ش، ۹مه گڼه، تنکي تکو، د بناغلي دردمند مقاله، ۶۵-۶۷ مخونه.




ادب کې د دغه ډول چاربیتو مثالونه ډېر لیدل کیږي .

<u>چاربیته :</u>

شین کمربه ګورم دغه ژامې به دې دل کړمه
اور به په تا بل کړمه

ما ته یې زمرې خو تربور ته ودریدی نه شي
باندې ورونتی نه شي

بل به غنم ونکرې ګوره قتل ته دې تیل یمه
زه ګوره چې شیر یمه

قسم ونکړې او نه شیر یې، لوی ګیدړ یې ته
خوشې اخلې د ړې ته

زه چې ډرې اخلم، خوله دې ورانه ده، مذکور کوې
بحث د تربور کوې

مړې که پاتې کیږې خو د سرو زرو زیور غوارم
نوې سلیپر غوارم

توکی د نیلون وریښم نوې پوزېښن غوارم
زه دغه فېشن غوارم

څرنګه چې دغه چاربیته ډېره اوږده ده، یواځې
د کسر بندې یې دلته رانقلوو :

<u>د کسر بند :</u>

کونډه - کونډه مه وایه، تربوره باندې ورونده که
ما به درنه کونډه که

ته په دې ارمان یې زه پوهېږمه چې پل کوې
یو نه کوې سل کوې

شل او سل یې څه کوې طالبه د افیشن غواړم
توکۍ د نیلون غواړم

---

یو وخت ما ته یو ملګري د لغمان په ولایت کې د یو طالب شاعر ویلي وو او مونږ په دې مجموعه کې د لغمان د سیمې نه کوم شاعر نه لرو ، کیدای شي چې دغه شاعر د لغمان د شاوخوا سیمې او سیدونکی وي .

(پای)



